

# همت


| | | |
|---|---|---|
| خپرونکې | : | د سنايي پرمختيايي موسسه |
| مسول مدير | : | راز محمد دليلي |
| ليکونکى | : | احمد فريد عارفي |
| پښتو ژباړه | : | مريم هاشمي |
| انځورګر | : | فتانه بکتاش عارفي |
| کمپوز او ديزاين | : | سيد نذير حسيني |

لومړى طبع : ۱۰۰۰ توکه، د سنايي پرمختيايي موسسه (SDO) د ۱۳۸۶ د وري مياشت.
دوهم طبع : ۱۰۰۰ توکه، د سنايي پرمختيايي موسسه (SDO) د ۱۳۸۷ د ژمی مياشت.
دريم طبع : ۱۰۰۰ توکه، د سنايي پرمختيايي موسسه (SDO) د ۱۳۸۸ د ژمی مياشت.
څلورم طبع : ۲۰۰۰ توکه، د سنايي پرمختيايي موسسه (SDO) د ۱۳۸۹ غويا مياشت.



اتم سړک، قلعه فتح الله د سنايي موسسه: په کابل کې پته
تيلفون: ۰۲۰-۲۲۰۱۶۹۳




۱۸۱: پوست بکس
بريښنا ليک: sieal@brain.net.pk
انترنيت پانه: www.sanayee.org
اورکزي پلازې شاته، يونيورستي تاون، پيښور پاکستان: په پاکستان کې پته.
تيلفون: ۰۰۹۲-۹۱-۵۸۴۲۱۵۵-۹۱۵۸۲۱۶۵
فکس: ۵۸۴۵۱۳۹ - ۹۱ + ۹۲ +



ددې کتاب ټول حقوق د سنايي پرمختيايي موسسې پورې اړه لري.

بسم الله الرحمن الرحيم

# په اوسني چاپ سریزه

د ښـنايي پرمختيايي موسسـې د دې اوچت اوګټور کتاب د اړتيا په نظر کې نيولو سـره چې ښودنه کوي که چيرې مونږ اراده وکړوله همت څخـه کـار واخلو ناشوني کارونه به شوني شي د چاپولو اقـدام وکړ. د ښوونځي بـيا رغاونې د ناهيلو شـوو ماشـومانو په زړونو کې د هيلو نهالونه راوټوکول. پر اوسـني چاپ مو اقـدام وکړ چې دا پلا بـه د کتاب لاسته راوړنې څه وي.

والسلام

راز محمد دليلي



# سریزه

ګرانو لوستونکو ! د سنایي پرمختیایي موسسه (SDO) په دې ویاړي چې د دې کتاب په وړاندې کولو سره یو بل ګام د هیواد د کوچنیانو او تنکیو ځوانانو د خدمت په ترځ کې پورته کوي.

د (همت) کتاب چې د ورور احمد فرید عارفي لیکنه ده، اووم کتاب دی چې د سنایي پرمختیایي موسسې SDO له خوا د چاپ په ګاڼه ښایسته کیږي. لکه څرنګه چې د کتاب له نوم څخه څرګندیږي د یو کوچني لوړ همت او مفکوره ده چې بالاخره د یو ټولنیز لوی خوځښت شکل غوره کوي.

په لنډه توګه هغه څه چې دا اثر د پایلې په توګه وړاندې کوي په لاندې ډول دي:

- په خپل ځان د اعتماد او باور لرلو حس.
- د ماشومانو او تنکیو ځوانانو په هکله ښه او جدي پاملرنه حتی په هغو امورو کې چې د دوي تر وس پورته ګڼل کیږي.
- د دې مفکورې تحرك او پیاوړتیا چې، تل باید مونږ په دې انتظار کې ونه اوسو چې پردي مونږ ته څه راکړي.
- د دې مفکورې پیاوړتیا چې مونږ د ځان لپاره څه کولای شو او څرنګه یې عملي کولای شو.
- د ټولنې د وګړو ټولنیزو، عام المنفعه او د بیارغاونې کارونو ته هڅول، د حشر او داوطلبانه کارونو له لارې.

په پای کې د سنایي پرمختیایي موسسې (SDO) اداره هیله لري چې د دې کتاب په خپرولو سره یو بل ګټور ګام د بیارغاونې په لور اوچت او خپل سهم اداء کړي همدارنګه د الله تعالی(ج) له دربار څخه د نورو ګټورو علمي او کلتوري خدمتونو د جوګه کیدو غوښتنه کوي ترڅو خپل وران ویجاړ هیواد پخپلو لاسونو ودان کړو.

و من الله التوفیق

راز محمد دلیلي

# Preface

In continuation of its past education and cultural activities, Sanayee Development Organization (SDO) has published a new peace education children book in Pashto language entitled "Sola aw Jagra" for the Afghan children and teenagers.

The author of this book is Mr. Farid Arifi, an Afghan young writer. This book gives a moral lesson form the catastrophes of war and the goodness of peace in poem and prose. The book has been illustrated with pictures in order to convey better its messages to the readers.

To say in brief this book conveys the following ideas and messages to the readers:

The ugly pictures of war and feeling of hatred fo the war.
Goodness of peace and creating peace motivations in the society.
Defeat of war in all spheres of life.
Victory of peace and being hopeful for the peace.

We hope this book would create motivation for peace among the Afghan children, teenagers and youth and would serve towards dissemination of culture of peace in the Afghan society.

With Regards,
Raz Muhammad Dalili

# همت

د وطن د یو لرې کلي په شـــــنه او ښکلې لمن کښې یو دولس کلن هلك د احـــمد په نوم ژوند کوي او په پنځم ټولګي کې سبق لولي.



په هغه ښوونځي کې چې احـــمد سبـــق لولي یو لومړنۍ ښوونځی دی چې شپږ ټولګي لري. که څه هم دا ښوونځی ډیر کوچني وو خو ډیر پاك صفا او زرغون وو. او لـه دې کبـــله چې د کلي ماشـــومانو په دې ښوونځي کې زده کړه کوله ډیر خوشحاله وو.

اما دې خوښيو ډېر دوام ونکړ ځکه يو کال وروسته په کلي کې درو انو جګړو له کبله دا ښوونځی هم په کنډوالو بدل شو.



له هغه وخت نه تر نن پورې يوازې احمد بلکه د هغه کلي ټول ماشومان د زده کړې نه پاتې شول. او د هغوي د ژوند ارزښتناکه ورځې بيهوده او عبث تيريدې.



ډېر وخت بــه د خپل ښوونځي په کنډوالو کې ګرځېده او هغه ورځې بـــه یې یادولې چې په همدې ځای کې چې اوس په یوه کنډواله بدل شوی لوبې کولې، زده کړه یې کوله او د خپل ټولګي والو سره ټوکې ټکالې او خنداوې کولې.



احمد به تل د خپل ځان سره سوچ کولو چې څه وخت به دا ښوونځی بیرته جوړ شي او هغه به د خپل کلي د نورو ماشومانو سره خپلې زده کړې ته دوام ورکړي؟

دا هغه پوښتنه وه چې احمد به تل له خپل ځان سره مطرح کوله او د دې پوښتنې د حل په لټه کې و.

یوه ورځ احمد په همدې فکرونو کې ډوب وؤ چې سترګې
یې په یوه الوتونکې ولویدې چې له خپل جسامت نه اوږد
اولوی د غنمو وږی یې له ځمکې نه دونې یوې څانګې
ته پورته کولو او هڅه یې کوله چه خپله ویجاړه ځاله
بیرته ودانه کړي.



کله چې احمد دا حالت ولیده د هغه په سترګو کې د هیلو بریښنا وځلیده او خپل ځان سره یې وویل. کله چې یو ناتوان الوتونکې خپله ویجاړه او ورانه ځاله یوازې بیرته ودانولې شي نو آیا مونږ نشو کولای چې خپل ویجاړ ښوونځی بیرته ودان کړو؟



دا پوښتنه سبب شوه چې هغه نور هم په همدې هکله فکر وکړي او کوښښ وکړي چې دې ستونزې ته د حل یوه ښه لاره ومومي.

لومړی احمد د موضوع په هکله خپل پلار سره مشوره وکړه
اما د هغه پلار چې له لیك لوست څخه برخمن نه ؤ احمد ته
یې وویل چې «د ښوونځي جوړول زموږ او ستاسو کار نه دی
دې خبرو پسې مه ګرځه» اما احمد چې د خپل ښوونځي یو
ممتاز زده کوونکې وو او د علم په زده کړه کې ډیر لیوال وو،
د خپل ښوونځي د جوړولو په هکله یې له هاند او هڅو څخه
لاس وانخیست او دا جمله یې ځان سره زمزمه کوله.
(چې پسې ګرځې هغه به مومې) او په خپل فکرونو کې ډوب
شو.



بله ورځ احمد خپل یو شمیر د ښوونځي ټولګي والو او ملګرو ته چې په همدې کلي کې اوسېدل لاړ او هغوي سره یې دا پوښتنې شریکې کړې.

- څه وخت به زموږ ښوونځی بیرته فعال شي؟
- څوك به هغه بیرته فعال کړي؟
- موږ به تر څه وخت پورې په کوڅو کې ورځې تیروو او ...



د احمد ټولګیوالو او ملګرو ډول ډول نظریې او ځوابونه ورکړل خو ټول په دې فکر کې وو چې نور څوك به دوی ته دا کار وکړي.
وروسته احمد په ډیر نرمۍ سره له هغوی څخه پوښتنه وکړه که دا کار مونږ پخپله ورو ورو سرته ورسو څنګه به شي؟



ددې خبرې په اوریدو سره عجیب آوازونه او مسخره آمزه خنداګانې اوچتې شوې یو تن په خندا سره وویل: ورونو احمد لیونی شوی ده خداې د هغه وبخښي دیر ښه هلك وو.



بل به غږ وکړو: اې کج کلاخانه زما او ستا یې پدې غټو خبرو څه؟ (شوله دې وخوره او پرده دې وکړه). له بلې خوا نه بــه بــل په مســخرو وویل: اې کور کوري کوترې په تولګې کې هم ستا د سبق ویلو سره موږ په تنګ وو، اوس هم سبق پسې نښتی یې خپل کور کې اوسه کله چې حکومت ښوونځی جوړ کړ بیا راشه او سبق وو ایه.

احمد ددې خبرو په اوريدو سره بې له دې چې څه ووايي ډير مايوسه شو، له خپلو ټولګيوالو دوستانو څخه جلا شو او کورته روان شو. يوه شيبه وروسته د يو کوچنې يوم سره د ښوونځي په لور روان شو.



ښوونځي ته د رسيدو سره يې په خپلو کوچنيو لاسونو سره يوم واخيست او په کار يې پيل وکړ او هغه خاوري چې د ښوونځي په حويلۍ کې پرتې وې اخيستلې او ايسته يې آچولې يو دوه ځله يې چې دا کار وکړ، ډير ستړي شو خپل کار يې پريښود او په يوه کنج کې کيناست.



هغه د یوې ډبرې پر سر کیناست او په چرتونو کې ډوب
شو چې څنګه کولې شي دا کار چې په رښتیا هم د هغه د
توان نه اوچت وو، وکړي.





د خپلو چرګوتو په مینځ کې لکه چې کومه د حـــل لاره یې
پیدا کړي وي په چټکۍ سره د خپل ځای نه اوچت شـو او
د خپل کور په لور روان شـــو وروســــته چې یو.م یې په کور
کې پرینبود بیرته د خپل کور څخه راووت.

او د بـل کلي په لور چې دوي ته نژدې وو او هلته د دوي د دري مضمون د ښوونکي کور وو روان شـــو. کله چې د خپل ښوونکي کورته ورسـيد . لږ څه وځنډيده او خاورې يې له خپلو کالو څخه پاکې کړې. کالې يې جوړ کړل او په ورويې دروازه وټکوله.



ځو شیبې وروسته ښوونکي دروازه خلاصه کړه. ښوونکي چې احمد یې د هغه د استعداد، لیاقت او اخلاق د پاره ورته ګران وو داحمد په لیدو ډیر خوشحاله شو. او احمد څخه یې غوښتنه وکړه چې کورته ورشي اما احمد د سلام او لاس ښکلولو نه وروسته د خپل ښوونکي څخه وغوښتل چې هغه سره یو څو شیبې خبرې وکړي او هغه ته لارښوونه وکړي.

احمد ټولې خبرې چې د هغه په ذهن کې وې ښوونکي ته بیان کړې او هغه څخه یې د دې موضوع د حل د لارې غوښتنه وکړه.





څرنګه چې ښوونکی یو ډیر مهربانه، خلک دوست او پوه سړی وو او د بیکارۍ نه هم ډیر ستړی شوی وو. د احمد خبرو اترو وروسته دوا ړو دا فیصله وکړه چې صبا سهار احمد د خپل ملګري او ټول هغه زده کوونکي چې په شا او خوا کلیو کې اوسیږي او په دې ښوونځي کې سبق لولي د ښوونځي خواته راټول کړي چې په دې هکله په ګډه سره پریکړه وکړي.



احمد د خپل ښوونکی سره له خدای په امانۍ نه وروسته په چټکۍ سره په لاره روان شو. په لاره کې یې خپل ځان سره دعا کوله چې خدای دې وکړي چې د هغه هڅې نتیجه ورکړي، ښوونځی ژر بیرته ودان شي او درسونه بیرته پیل شي.

هغه ډیر په چټکۍ سره تللو چې ژر تر ژره هلکان هم خبر کړي په پای کې احمد د خپل دوه درې ملګرو او ټولګي والو په مرسته وکولای شول چې زیات شمیر زده کوونکي خبر کړي چې صبا سهار په اته بجو ټول ښوونځي ته حاضر شي چې ښوونکی د ښوونځي بیرته پیل کیدو په هکله هغوي سره خبرې کوي.

صبا سهار یو زیات شمیر زده کونکي د ښوونځي خوا ته راټول شوي وو او خپل ښوونکي ته منتظر وو. اته بجې وې چې ښوونکی را څرګند شو. احمد ډېر خوشحاله وو ځکه چې ښوونکی یوازې نه وو. هغه سره سر ښوونکی او یو بل ښوونکی هم د ښوونځي په لور را روان وو.



د سر ښوونکي او ښوونکو په لیدو سره د زده کونکو شور ماشور آرام شو او ټول په منظم ډول د کتار یا د لیکې په شان ودریدل. سر ښوونکي او ښوونکو په را نژدې کیدو سره زده کوونکو ته سلام ورړاندې کړ او ټولو زده کوونکو په یو آواز سره (وعلیکم) وویل. وروسته بیا سر ښوونکی په یو لوړ ځای ودریده او د زده کوونکو د حال پوښتنې نه وروسته یې خپلو خبرو ته داسې ادامه ورکړه:



ګرانو زده کونکو !
څه رنګه چې تاسو خبر یاست پوره یو کال کیږي چې زمونږ ښوونځی ویجاړ شوی دی او متاسفانه د ورانوونکو جګړو له کبله هیڅ څوك ددې ښوونځي د ودانولو په فکر کې نه دي او بدبختانه د تاسو یو کال ژوند په عبث تیرشو. تاسو خپله فکر وکړئ ددې یو کال په موده کې مونږ څومره سبق، کتابونه او تعلیم نه وروسته پاتې شوي یو.
ولې بیا هم ډیر د خوښۍ ځای دی چې مونږ او تاسې ددې ښوونځي د یو زده کونکي د همت په اساس چې احمد نومیږي دلته راټول شوي یو.
دا شوق او علاقه چې تاسو یې تعلیم ته لري ددې باعث شو چې مونږ هم پدې فکر کې شو چې څرنګه خپل ښوونځی بیرته ودان کړو. له دې کبله ما ستاسو د ښوونکو سره یو ځای پرون د یوې بهرنۍ موسسې غړی سره چې په کوز کلي کې په ماین پاکولو کې بوخت وو خبرې وکړې او د هغوی نه مو غوښتنه وکړه چې د خپل تراکتور په واسطه یوازې د ښوونځي ځمکه اواره یا (هموار) کړي هغوی هم ژمنه وکړه چې نن د لس بجو نه تر دولس بجو پورې خپل تراکتور د هغه د چلونکي سره مونږ ته راولیږي.
اوس زه تاسو نه غواړم چې لاسونه سره ورکړي او د تراکتور د رارسیدو نه مخکې د میز او څوکۍ تختې او نور څیزونه خاورو نه ټوله کړئ او یو کنج کې یې کیږدئ. او په یاد و لرئ چې د ښوونځي له اوارولو څخه وروسته په همدې خاورې باندې سبق پیلوو. خو پدې شرط باندې چې هوا ښه وي او کله چې ورښت وي نو رخصتي به کوو.
زه پوهیږم چې دا رنګه سبق ویل به ډیر ګران وي خو مونږ چاره نلرو باید له ستونزو سره جوړ جاړی وکړو. وروسته بیا خدای(ج) مهربانه دی چې د حل لاره پیدا شي او په یاد ولرئ چې د ماین پاکولو د مامورینو د ویناوو په اساس زمونږ د ښوونځي ساحه له ماینونو څخه پاکه شوې ده اوس بسم الله ویلو سره خپل کار پیل کوو.

د سر ښوونکي د خبرو پای ته رسید و سره یو عجیبه غونډې شور او شوق د زده کوونکو په زړونو کې د ښوونځي بیرته پیل کیدو له کبله پیدا شو. ټولو په خوشحالۍ سره په کار پیل وکړ. او په ګډه یې د تختو او لرګیو په ټولولو د ښوونځي د شا او خوا ځخه پیل کړل. د ښوونځي ساحه ډیره لویه نه وه نو دا کار په چټکۍ سره پای ته ورسید.





دتختو، دروازو او نورو شیانو د راټولو کار له ښوونځي څخه خلاص شو ناڅاپه د تراکتور د ماشین اوچت آواز د ټولو زده کونکو پام راواړاوه. چې د لرې نه د ښوونځي په لور روان وو.

کله چې تراکتور ښوونځي ته نژدې شو د زده کونکو شور او
شوق او آوازونه زيات شول. هماغه وو چې سر ښوونکی د
تراکتور چلوونکي خوا ته نژدې شو. اویو څه خبرې یې ورسره
وکړې بیا د تراکتور چلوونکی خپل کار پیل کړ.



زده کونکو په ډېره حیرانتیا سره د تراکتور کار ته پام
کاوه چې څرنګه دا وړوکی ماشین د خاورې غونډۍ ځان
سره مخکې وړي او ځمکه اواروي.



په همدې توګه په صبا یې ښوونځی پیل شو. که څه هم زده کونکي ډیر لږ وو خو بیا هم ښوونځي په ګوټ ګوټ کې په اواره شوې ځمکه باندې د بېلابېلو ټولګیو په عنوان په خپل سبق پیل وکړ. که څه هم خاورې باندې کیناستل، د کتابونو او ښوونکو کموالی لویه ستونزه وه.



خو له دې امله چې له بې کاریو څخه یې خلاصون موندی و ټول خوشحاله تر ستر ګو کیدل.



ورځې همدا رنګه تیریدې کله به چې هوا صفا او لمریزه وه نو سبق وو او کله به چې ورښت وو نو ښوونځی به رخصت وُ.

دغوايي د مياشـــــــتې په ورځو کې يوه ورځ چې زده کوونکي په سبـق ويلو بـوخت وو، دوه درې موټرو چې د ښوونـځي خواتـه ودريدل د زده کوونکـو توجه يې ځانتـه جلب کړه.



دوه درې کسان د موټر څخه ښکته شول او د سر ښوونځي په لور روان شول.



هغوي د سرښوونکي سره ستړي مشي وکړه او کله يې
چې سرښوونکي سره يو څو دقيقې خبرې وکړې بيرته د
ښار په لور روان شول.

کله چې هغوي لاړل، ســـر ښوونکي ټول زده کونکي او ښوونکي راټول کړل او په ډېره خوشحالۍ ســره يي وويل: چې همدا اوس د حکومت استازي او ديوې خيريه موسسې غړي راغلي وو. هغوي وويل: چې څو روځې مخکې کله چې مونږ ددې کلي نه تيريدو مونږ ستاسو زده کونکي وليدل چې هغوي په ډېرو ستونزو سره سره په خاورو باندې ناست او په ډېر شور او شوق سره سبق ويلو کې بوخت وو. نو مونږ هوډ کړي چې تاسو ته شپږ ټولګي او يوه اداره جوړه کړو. له همدې کبله سر له سبا څخه تاسو ديوې مياشتې له پاره رخصت ياست. او انشاءالله يوه مياشت وروسته به په نويو ټولګيو کې به خپلو درسونو دوام ورکړي.





زده کونکي ډېر خوشحاله شوه او د خپلو کورونو په لور روان شول چې دا د خوښۍ خبر خپلو کورنيو ته هم ورسوي.



سبا سهار د ښوونځي د بیا رغونې کار پیل شو احمد په ډیرې بې صبرې سره د کار د پای ته رسیدلو انتظار کاوه او هره ورځ ښوونځي خواته راته او غوښتل یې چې ووینې چې څومره کار مخکې تللی دی. دهغوی د چټک کار څخه یې ډیر خوند اخیسته او د خدای (ج) شکرانه بې ادا کوله.



یوه میاشت په ډیره چټکۍ سره تیره شوه د ښوونځي د ماڼۍ کار هم پای ته رسید وته نږدې وو.



د سیف لودین کتابتون

دا خبر په چټکۍ سره په کلي کې خپور شو چې صبا سهار د شنبې یا هفتې په ورځ چې د غبرګولي میاشتې شلمه نېټه ده ښوونځي بېرته پيل کېږي او د کلي د مشرانو څخه غوښتنه شوې چې د ښوونځي د افتتاح په کې برخه واخلي.



صبا سهار اته بجې ټول زده کوونکي په منظمه توګه د ښوونځي صحن ته حاضر شول. د هغوی په وړاندې د کلي مشران او نور میلمانه په څوکیو باندې کیناستلي وو او د نوي ښوونځي افتتاح ته منتظر وو. بالاخره د ښوونځي افتتاح د قرآن کریم په تلاوت کولو سره پیل شو.



همدارنګه ټول زده کوونکي خپلو نویو ټولګیو ته لاړل او
سبقونه یې پیل کړل.



وروسته سر ښوونکي ټولو زده کوونکو ته دنوي ښوونځي راتللو ته ښه راغلاست وویل او زده کوونکي یې سبق ویلو ته وهڅول. او د حکومت او د مرستندویو موسسو د مرستې څخه یې مننه وکړه. یو ځلې بیا یې د احمد د لوړ همت یادونه وکړه او زده کوونکو نه غوښتنه وکړه چې نویو ټولګیو ته ولاړ شي. او په خپلو سبقونو پیل وکړي.

تا برده رنج گنج مُیسر نمی شود
مزد آن گرفت جان برادر که کار کرد


د سیف لودین کتابتون

په پای کې د احمد د لوړ همت، هڅو او زیار له وجهې ښونځی بیرته ودان شو. احمد هم د خپلې پوښتنې ځواب پیدا کړ.

وروسته احمدتل دا خبرې تکرارول.
چې پسې ګرځي هغه به مومي

